ورځپانه
# هیواد

مؤسس: عبدالرووف بېنوا
د تاسیس کال ۱۳۲۸ لمریز
سه شنبه د شعبان المعظم ۵مه ۱٤٤٦ق کال، دسلواغې ۱٦ مه ۱٤۰۳ ل کال، دفبروري ٤ مه ۲۰۲۵ م کال، خصوصي ګڼه ۵۳۵ مه، پرله پسې ګڼه ٦۲۵ مه، اتمه دوره

## فلسطین کې د حماس غورځنګ د مشرانو او په عموم کې د مبارزې د شهیدانو په اړه د اسلامي امارت د تعزیت پیغام

د افغانستان اسلامي امارت د فلسطین اسلامي مقاومت (حماس غورځنګ) د نظامي څانګې د مشر محمد الضیف په شمول د څو تنو نورو مشرانو او په عموم کې د فلسطیني مجاهدینو د ټولو شهیدانو د شهادت په اړه د حماس اسلامي غورځنګ له مشرتابه، د ټولو شهیدانو له کورنیو، مجاهدینو او ټول فلسطیني ملت سره خپله ژوره خواخوږي شریکوي او هغوی ته تعزیت وایي.د اسلامي مقاومت د غورځنګ دغو مشرانو د صهیونیستي اشغال پر وړاندې د خپل نه ستړې کېدونکي مقاومت یو داسې میراث پرېښود ،چې د نسلونو لپاره به د عزت، زړورتیا، مقاومت او د فلسطین د خپلواکۍ مبارزې ته د نه ماتېدونکې ژمنتیا یو مثال وي.د تل په څېر خپل باور یو ځل بیا تکراروو، چې جهادي مبارزې په شهادت نه کمزورې کېږي، بلکې لا پیاوړې کېږي او د خپل نهایي هدف په لور لاره لنډوي.
د فلسطین قضیه ... ۳مخ

## دازبیکستان او افغان خصوصي سکټور ترمنځ سوداګریز تړونونه لاسلیک شول



کابل ته د ازبیکستان د لومړي وزیر عبدالله عارفوف په مشرۍ د ازبیکستان د دولتي او خصوصي سکټور راغلي پلاوي د صنعت او سوداګرۍ له وزیر نور الدین عزیزي سره کتنه کې د دواړو هېوادونو ترمنځ د ترسره شویو هوکړو په اړه د لا زیاتې همغږۍ رامنځته کېدو او د سوداګرۍ کچې پر پراختیا خبرې کړې دي.
دې کتنه کې د دواړو هېوادونو ترمنځ د ترجیحي سوداګرۍ د هوکړه لیک تیارېدو، سمنګانو کې د سمنټو فابریکې جوړولو او دواړو هېوادونو کې د سوداګرۍ خونو پر جوړولو هم خبرې شوې دي.
د ازبیکستان دې پلاوي د افغانستان د ډېرو سکرو د وارداتو لپاره چمتووالی ښودلی ... ۳مخ

## د کابینې غونډه کې سوداګرو ته د اسانتیاوو پر برابرولو بحث وشو

د افغانستان اسلامي امارت د کابینې غونډه د رئیس الوزراء الحاج ملا محمدحسن اخند په مشرۍ ترسره شوه.
دا غونډه چې د قرانکریم په تلاوت پیل شوه، په کې د هېواد پر مهمو اقتصادي، ټولنیزو او فرهنګي موضوعاتو بحث او پرېکړې وشوې او په اړه یې لازم



تصامیم ونیول شول. غونډه کې همدا راز ځینې مسائل ټاکل شویو پلاویو ته ... ۳مخ

## کوریای جنوبی ۳ میلیون دالر به افغانستان کمک کرد



کمیساریای عالی سازمان ملل متحد در امور پناهندگان (UNHCR) اعلام کرده که کوریای جنوبی سه میلیون دالر به افغانستان کمک کرده است.این نهاد، در خبرنامه‌ای افزوده که این کمک در بخش رسیدگی به بی‌جاشدگان، بازگشت‌خوردگان و جوامع آسیب‌پذیر در افغانستان، هزینه خواهد شد.
کمیساریای عالی سازمان ملل متحد در امور پناهندگان، افزوده که با این کمک به ۲۸۰۰بازگشت‌خورده به افغانستان سرپناه دایمی ساخته می‌شود.به گفته این نهاد، با این کمک به ۳۴ هزار شهروند افغانستان خدمات روانی و روانی-اجتماعی نیز ارائه خواهد شد ... ص۳

## د افغانستان ټول قومونه د اسلامي امارت په راتګ سره متحد شوي

د هېواد له جنوبغربي حوزې څخه د بېلابېلو قومونو یو کاروان د « قومونو د یووالي او متحد افغانستان » تر نامه لاندې کونړ ته سفر وکړ. دغه کاروان د کونړ د دانګام ولسوالۍ پر فرضي کرښه د امنیتي ځواکونو ستاینه کړې او ډاډ یې ورکړی چې ولسونه د ملي ځواکونو تر شا ولاړ دي.
دوی زیاته کړه، که اړتیا شي، د هېواد د خاورې او سرحداتو د ساتنې لپاره به له امنیتي ځواکونو سره څنګ په څنګ ودرېږي. دغه راز د کونړ مرستیال والي مولوي عبدالله حقاني راغلو قومي مشرانو ته د دوی کړنې د خپلواک او متحد افغانستان یوه څرګنده نښه وبلله او ویې ویل: دا ډول سفرونه نه یوازې د امنیت او قومي یووالي ښکارندویي کوي،




بلکې د کلتور، رسم او رواج او ژبنیو اړیکو... ۳مخ

## د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت مشرتابه غونډه وکړه

د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت د مشرتابه غونډه د اطلاعاتو او فرهنګ د وزیر الحاج ملا خیرالله خیرخواه په مشرۍ جوړه شوه.
په دې غونډه کې د ګڼو نورو موضوعاتو ترڅنګ د ځینو مغرضو رسنیو له لورې د بې ځایه افواهاتو او نا کره او غیر مؤثقو معلوماتو پر خپرولو بحث او د نظرونو تبادله وشوه. همدا ډول له ټولو اړخونو څخه غوښتنه وشوه، چې د خبر رسولو برخه کې باید د ژورنالیزم اخلاق او رسنیز معیارونه په پام کې ونیول شي او هېڅوک باید داسې څه خپاره نه کړي، چې د مطبوعاتو له ملي او نړیوالو نورمونو سره په ټکر کې وي.

## فاریاب کې د مهاجرینو ښارګوټي لپاره تفصیلي پلان جوړ شو

د کور او ښار جوړولو وزارت د سروې او جي اي، ایس رئیس حافظ انجنیر محمد یوسف لطیف وایي :د وزارت له لوري د مهاجرینو د ښارګوټو د تخنیکي چارو د ژر او پر وخت ترسره کېدو په موخه د دوی په مشرۍ د (مهاجرینو چارو عملیاتي کمېټه) جوړه شوې، چې هڅې یې پیل کړې، تر څو ټولې ورسپارل شوې چارې په سمه توګه او په خپل وخت ترسره شي ... ۳مخ

## دافغانستان بانک څخه د خصوصي سکټور ملاتړ

د افغانستان د سوداګرۍ او پانګونې خونې له لوري د ملاتړ په موخه مطبوعاتي غونډه جوړه شوه.په دې




غونډه کې د افغانستان بانک، د سوداګرۍ او پانګونې خونې، د صرافانو ټولنې، د سوداګرۍ برخې د بېلابېلو ټولنو مشرانو او استازو ګډون کړی و. په یاده مطبوعاتي غونډه کې د افغانستان بانک لومړي مرستیال صدیق الله خالد د خپلو خبرو په پیل کې د سوداګرۍ خونې له مشرتابه مننه وکړه، چې د افغانۍ د ثبات لپاره د افغانستان بانک د هڅو د ملاتړ په موخه یې رسنیز کنفرانس جوړ کړی دی.نوموړي وویل:د افغانستان بانک د خپلو مسئولیتونو په چوکاټ کې ... ۳مخ
افغانیو د ارزښت ساتنې لپاره د افغانستان بانک له هڅو

## له هرات څخه بهر ته د پستې صادرات ۲۰سلنه زیات شوي

د هرات د سوداګرۍ او صنایعو خونې مسئولین وایي ،چې دغه ولایت کې د «پستې» صادرات ۲۰سلنه زیات شوي دي. د یاد ولایت د سوداګرۍ او پانګونې خونې اجرائیه آمر محمدیوسف امین رسنیو ته ویلي، چې د وروستیو نهو میاشتو پرمهال له دغه ولایته د ۲۴ میلیونو او ۶۷۶زرو ډالرو په ارزښت بهر ته پسته صادره شوې.د نوموړي په وینا، د صادراتو یادې کچې ته په کتو د تېرکال په پرتله ۲۰ سلنه لوړوالی ښیي.ده ویلي،چې تېرکال د ۲۰ میلیونو او ۳۸۲زرو ډالرو په ارزښت بهر ته له دغه ولایت پسته صادره شوې.د یاد ولایت د سوداګرۍ او پانګونې خونې اجرائیه آمر محمدیوسف امین همداراز ټینګار وکړ ،چې د وروستیو نهو میاشتو پرمهال د



۱۱۹ میلیونو او ۳۲زره امریکایي ډالرو په ارزښت ... ۳مخ

## زلمی خلیلزاد: اسلام آباد په افغانستان کې د تاوتریخوالي د خپرولو په لټه کې دی

د افغانستان د سولې په چارو کې د امریکا پخوانی استازی زلمی خلیلزاد وایي، که ترکیه کې د هېواد له پخوانیو چارواکو سره د پاکستان د استخباراتي چارواکو (آی اېس آی) لیدنې ربښتیا وي، نو اسلام اباد د دوی د ګومارلو په وسیله په افغانستان کې د تاوتریخوالي د خپرولو په لټه کې دی.نوموړي پر خپله ایکس پاڼه لیکلي؛ ... ۳مخ



## افراسیاب خټک : له پاکستان څخه په زور د افغان کډوالو اېستل له نړیوالو قوانینو سرغړونه ده



د کډوالو په چارو کې د ملګرو ملتونو عالي کمیشنرۍ یا (یو ان ایچ سي آر) د پاکستان حکومت له لورې په جبري ډول د افغان کډوالو د ایستلو پر دوام خواشیني څرګنده کړې او ویلي یې دي چې د کډوالو لپاره د ملګرو ملتونو عالي کمیشنرۍ او د کډوالۍ نړیوال سازمان یا IOM د افغان کډوالو د ملاتړ په برخه کې پر خپلو ژمنو ټینګار کوي.دغه سازمان د یوې خبرپاڼې په خپرولو سره ویلي؛ دغه پرېکړه ... ۳مخ

هېواد

سه شنبه د شعبان المعظم ۵ مه ۱۴۴۶ق کال، د سلواغې ۱۶ مه ۱۴۰۳ ل کال، د فبرورۍ ۴ مه ۲۰۲۵م کال، خصوصي ګڼه ۵۳۵ مه، پرله پسې ګڼه ۶۲۵ مه، اتمه دوره






## د افغانۍ ارزښت؛ د اقتصادي ثبات مهمه برخه

په وروستیو ورځو کې یو ځل بیا د ډالرو په وړاندې د افغانیو ارزښت د پام وړ لوړ شو، چې دا د افغانستان د اقتصادي ثبات لپاره یو مثبت پرمختګ ګڼل کېږي. د افغانستان بانک، چې د اسلامي امارت تر چتر لاندې فعالیت کوي، د چټکو او پر وخت اقداماتو له لارې بازار ته ثبات ورکړ، چې دا د اقتصادي نظم، مالي خودکفایۍ او د اسعارو د کنټرول لپاره د حکومت پر ژمنتیا دلالت کوي.

د اسعارو بیې، په ځانګړې توګه د ډالرو او افغانۍ ترمنځ تبادله، د هېواد د اقتصادي روغتیا یو مهم شاخص دی. کله چې څو ورځې وړاندې د ډالرو ارزښت ناڅاپه لوړ شو، د خلکو اندېښنې یې را وپارولې، ځکه چې د افغانیو کمزورتیا مستقیماً د توکو پر بیو اغېزه کوي، د عامو وګړو د ژوند لګښت لوړوي او سوداګریزې چارې له ستونزو سره مخ کوي. خو د افغانستان اسلامي امارت تر چتر لاندې د افغانستان بانک پر وخت اقدامات وکړل، د اسعارو بازار یې کنټرول او د افغانۍ ارزښت یې بېرته لوړ کړ. دغه ګام نه یوازې د افغانیو ارزښت وساته، بلکې د سوداګرو، پانګوالو او عامو خلکو باور یې هم زیات کړ.

د اسعارو ثبات د هر هېواد د اقتصادي پرمختګ، د پانګوالو د اعتماد، د سوداګریزو معاملو د دوام او د خلکو د پېرودلو قوې د ساتلو لپاره مهم دی. که چېرې د یوې هېوادنۍ کرنسي ارزښت کمزوری شي، نو د توکو بیې لوړېږي، خلک د ژوند له سختیو سره مخ کېږي، سوداګریز بازارونه ګډوډېږي او بهرني پانګوال پانګونې ته زړه نه ښه کوي. له همدې امله، د افغانیو د ارزښت ساتل نه یوازې د مالي سیاست یوه اړتیا ده، بلکې د اقتصادي خپلواکۍ، د کورنیو تولیداتو د ودې او د افغانستان د سوداګریزو اړیکو د پراخولو لپاره یو مهم اصل دی.

د افغانستان بانک باید د افغانۍ د ارزښت د ثبات لپاره لا اوږدمهالې، تخنیکي او مؤثرې ستراتېژۍ تعقیب کړي. ځینې مهم اقدامات، چې کولی شي د افغانۍ ثبات ته دوام ورکړي، په لاندې ډول دي:

د اسعارو د بازار تنظیم او کنټرول: د افغانستان بانک باید د اسعارو بازار ته ځانګړې پاملرنه وکړي، د اسعارو د ناڅاپي لوړېدو او ټیټېدو مخه ونیسي او د بانکي سیستم شفافیت لا زیات کړي. دا کار د دې لامل کېږي چې د ډالرو پر وړاندې د افغانۍ ارزښت ثبات ومومي او خلک له ناڅاپي مالي زیانونو څخه خوندي شي.

د داخلي تولیداتو او صادراتو وده: یو هېواد هغه مهال کولی شي د خپلې کرنسۍ ارزښت وساتي چې داخلي تولیدات یې پیاوړي وي او د بهرنیو توکو پر ځای کورني محصولات وکارول شي. د افغانستان اسلامي امارت باید د صنعت، کرنې، کانونو او تولیدي فابریکو پراختیا ته جدي پاملرنه وکړي. که کورني تولیدات زیات شي او صادرات پراخ شي، د ډالرو پر وړاندې به د افغانۍ ارزښت نور هم لوړ شي.

د بانکي نظام پیاوړی کول او د بهرنیو اسعارو غیرقانوني بازارونه کنټرولول: د افغانستان بانک باید د بانکدارۍ سیستم ...

۳مخ

# د افغان ولس پر وړاندې د امریکا ظالمانه پرېکړې له بشري حقونو ښکاره سرغړونه ده

جمیل باور

په دې وروستیو ورځو کې ګڼ شمېر افغانانو د متحدو ایالتونو هغې ادعا ته تُند غبرګون ښودلی، چې ویلي یې دي: د افغانستان دمرکزي بانک د کنګل شوې شتمنۍ یوه برخه ښایي بېرته د امریکا حکومت ته ورکړل شي، دغه ظالمانه او بې منطقه ادعا په داسې وخت کې د افغانستان د بیارغونې لپاره د متحدو ایالاتو ځانګړي مفتش یا سیګار راپورته کړې، چې له یوې خوا واشنګټن اسلامي امارت په رسمیت نه پېژني او له بلې خوا پر امارتي مشرانو د ملګرو ملتونو او امریکا له لوري هر راز اقتصادي بندیزونه او محدودیتونه وضع کېږي، چې دغه حالت په اصل کې د افغان ولس په حق کې ستر ظلم دی،ځکه پر افغانستان د هر ډول بندیز او محدودیت لګولو زور له افغان ولسه خېږي او ټول تاوان یې همدې قشر ته متوجه دی، له دې پرېکړې وړاندې یعنې د ۲۰۲۱ م کال په اګست میاشت کې چې کله پر افغانستان اسلامي امارت بیا واکمن شو، د متحدو ایالاتو مخکیني جمهور رییس جو بایډن په امریکا کې د افغانستان د مرکزي بانک نږدې ۷ میلیارده ډالره کنګل کړل او وروسته یو شمېر اروپایي هیوادونو هم د افغانستان نږدې ۲ میلیارده ډالره کنګل کړل، وروسته واشنګټن د کنګل شویو پیسو نیمایي ۳.۵ میلیارده په سویس کې «افغان وجهي صندوق» ته ولېږدول چې په افغانستان کې په بشري مرستو کې ترې کار واخیستل شي، خو پر ځای د دې چې افغانستان ته راولېږل شي، ۳.۵ میلیارده یې د بایډن په امر په امریکا کې پاتې وو چې ویل کیدل هغو امریکایي کورنیو ته به د بدلې په خاطر ورکړل شي چې د ۲۰۰۱ م کال د سپټمبر پېښه کې زیانمن شوي دي.

د سیګار د راپور په حواله د افغانستان د مرکزي بانک کنګل شوي شتمني چې په لومړي سر کې ۳.۵ میلیارده ډالره وه، له سود اضافه کېدو وروسته اوس نږدې ۴ میلیاردو ډالرو ته رسېدلې ده. په راپور کې همدارنګه ویل شوي چې د بهرنیو مرستو د ارزیابۍ له امله د متحدو ایالاتو حکومت او کانګرس ښایي په دې هکله څېړنې وکړي چې دا پیسې د امریکا د حکومت ترکنټرول لاندې بېرته راشي. پر افغانستان د امریکا له لوري د بندیزونو لومړی اقدام د افغانستان د مرکزي بانک پشتیبانه شتمني چې شاوخوا نهه نیم میلیارده ډالره کېږي هم کنګل کړه. په دې پسې په سمدستي ډول د پیسو نړیوال صندوق (IMF) هم د ۲۰۲۱ م کال په اګست میاشت کې اعلان وکړ چې دغه سازمان به د نړیوالې ټولنې نظر او تګلارې ته ګوري چې څنګه له افغانستان سره تعامل کوي؟ تر هغې چې د دوی څرګنده پالیسي وړاندې کېږي افغانستان به د پیسو نړیوال صندوق ته د هر ډول مرستو او شتمنۍ ته لاسرسی ونه لري، دا اعلان وروسته له هغې وشو چې امریکایي سناتورانو په یوه لیک کې له امریکایي ادارو غوښتي وو چې د اسلامي امارت په راتګ سره د دوی لاسرسی مالي سرچینو ته محدود یا هم ختم کړي چې په خواب کې یې امریکا د افغانستان د نهه نیم میلیاردو ډالرو شتمني د کنګل کېدو خبر ورکړ.

دا نهه نیم میلیارده ډالره د افغانستان ملکیت دی چې افغانستان د خپلې کرنسۍ د ملاتړ لپاره په نړیوالو بانکونو کې ایښي دي، څو د افغانۍ ارزښت پرې وساتل شي. همدارنګه له افغانستان سره د سوداګریزو راکړو ورکړو، په ځانګړي ډول په وارداتو کې هم ترې استفاده کېږي.له همدې امله د افغانستان د مرکزي بانک د شتمني کنګل کېدو د افغانستان اقتصاد کمزوری کړی او افغانان ټول په یوه غږ له نړیوالې ټولنې څخه غوښتنه کوي چې څه د پاسه ۹ میلیارده ډالره بېرته د افغانستان مرکزي بانک ته وسپاري، ځکه دا پیسې غیر له افغانانو د هېچا ملکیت نه دی او نه څوک حق لري، چې د افغان ولس حق تر ستونې تېر کړي، افغان ولس د دې شتمنیو د استفادې، بېلولو او لېږد په باره کې جدي دی او د متحدو ایالتونو دغه ډول بې منطقه اقدام ورته هېڅ د منلو نه دی ، نو ښه به وي، چې نړیواله ټولنه او امریکا د بېلابېلو پلمو پر ځای دغه ګنګل شوې شتمني د افغانستان مرکزي بانک ته وسپاري، چې یاده چاره به په افغانستان کې په مالي او اقتصادي ثبات کې مهم نقش ولري.اسلامي امارت چې د ۲۰۲۱ م کال په اګست کې د دویم ځل لپاره واک ته رسېدلی ، د متحدو ایالاتو په ګډون هېڅ هېواد یا نړیوالې ټولنې په رسمیت نه دی پېژندلی.

د امریکا له لوري د زېرمه شوې شتمنۍ کنګل کول په لویه کې د افغانستان پر اقتصادي حالت باندې ژوره اغېزه پرېباسي، په سیاسي چاپېریال کې د حکومتولۍ اغېزې زیانمنولې شي او د نړیوالو له نظره یو بد تصویر له ځان سره لري. مخکې مو هم وویل چې له دې ذخیره شوې شتمنۍ په وارداتو کې هم کار اخیستل کېږي، نو د وارداتو برخه مو سخته زیانمنېدلی شي؛ لکه موږ چې اوس ګورو د افغانستان ډېره تکیه پر بهرنیو توکو باندې ده؛ یعنې واردات یې زیات دي، نو دا برخه اوس دومره زیانمنه شوې چې د توکو بیې په بې ساري ډول پورته شوې او د بشري ناورین د راتلو ستر خطر متوجه دی. بل ستر زیان یې دا دی چې د افغانستان مرکزي بانک د افغانۍ د ارزښت د ثبات ساتلو په موخه په اوونۍ کې دوه یا درې ځلې بازار ته ډالر د خرڅلاو لپاره وړاندې کوي؛ یعنې د افغانستان په بازار کې د ډالرو د تقاضا د زیاتوالي پر اساس دا کار ترسره کېږي؛ ځکه چې افغانستان په زیاته پیمانه راکړه ورکړه په ډالرو باندې کوي، نو په ډېره پیمانه د افغانۍ د ارزښت ساتلو په موخه ډالر بازار ته د خرڅلاو لپاره نه شي وړاندې کولی او په دې سره د افغانۍ ارزښت را ښکته کېږي چې موږ اوس د دې شاهدان یو.د نرخونو ثبات د افغانستان بانک لپاره یو مهم هدف دی او کله چې بازار ته د ډالرو عرضه کول کم شي، نو نرخونه خپله پورته ځي او د نرخونو پورته تلل زموږ د ګړنګ پر غاړه ولاړ حالت نور هم وخیم کولی شي.بله برخه په دې ذخیره شوې شتمنۍ کې د سوداګریزو بانکونو شتمنۍ هم شاملې دي، همدارنګه د ځینو سوداګرو ډېره کمه سرمایه هم په کې شته چې دوی هم له دې څخه استفاده نه شي کولی او بانکونه به د پیسو له کمښت سره مخ شي؛ ځکه اوس وخت کې خلک بې کاره دي او دا به د افغانستان د بانکوالۍ په نظام کې د ناورین رامنځته کېدو سبب وګرځي.

نړیوال افغان ولس ته په داسې سترګه ګوري، چې په دې اړه د پوښتنې څوک نه لري. په امریکا کې کنګل شوې افغان شتمنۍ د افغان ولس حق دی، دا نه د امریکایانو ده نه د امریکا ده، نه د ټرمپ ده او نه هم د افغانستان د تېر نظام وه، نو د امریکا یاده کړنه د افغان ولس په حق کې ستره جفا او تېری دی، امریکا چې په بېلا بېلو برخو کې ځان غښتلی بولي، د افغانستان په اړه یې نامعقوله او نا عادلانه پرېکړه کړې، چې دا له بشري حقونو او عدالت څخه ښکاره سرغړونه ده او د افغانستان د اوسني بحراني حالت پړه خپله د امریکا پر غاړه ده.لنډه داچې اقتصادي بندیزونه د هېچا په ګټه نه دي، تر دې چې دا خپله نړیوالې ټولنې ته هم یو سرخوږی دی چې په افغانستان کې د بشري ناورین له راتلو سره به دوی هم خوندي پاتې نه شي.

# پر افغانیو راکړه ورکړه؛ د ملي اقتصاد د پیاوړتیا بنسټ

ځواک یوسفزی

په افغانستان کې کله چې د افغانیو د ارزښت خبره کېږي، اکثره خلک داسې فکر کوي چې افغانۍ یوازې د یوې محلي پیسې په توګه شتون لري چې یوازې د داخلي مصرف لپاره کافي ده، نه د یو ملي ارزښت په توګه. دا هغه تصور دی چې په ټولنه کې غالب دی، چېرې چې خلک د افغانیو پرځای ډالر او نور بهرني اسعار لکه یورو یا ریالونه کاروي. دا داسې برېښي لکه چې افغانۍ یوازې د یوې کاغذي پیسې په څېر وي، چې یوازې په ځینو محدودو شرایطو کې کارول کېږي، نه د هېواد د اقتصادي ځواک او خپلواکۍ د سمبول په توګه. خو که موږ لږ تفکر وکړو، دې ته متوجه کېږو چې د افغانیو کارول په ټولو راکړو ورکړو کې څومره مهم دي چې کولی شي زموږ ملي اقتصاد پیاوړی او باثباته کړي.

د افغانیو د ارزښت ساتنه او پراختیا د یوه ملي هدف په توګه ګڼل کېږي. که ټول افغانان په خپلو سوداګریزو معاملو کې افغانۍ وکاروي، دا یوازې د هغې کرنسۍ ارزښت نه زیاتوي، بلکې د هېواد اقتصادي سیستم ته ثبات هم ورکوي. داسې ښکارېږي چې که د افغانیو کارول زموږ د فرهنګ او اقتصادي کړنو برخه شي، د دې پیسې ارزښت به د بهرنیو اسعارو پر وړاندې یو باثباته موقعیت ترلاسه کړي.

خو دلته یوه اصلي ستونزه دا ده چې زموږ ټولنیز چلند له افغانیو سره په داسې توګه تنظیم شوی چې افغانۍ یوازې د کورنۍ سوداګرۍ لپاره پاتې شي، حال دا چې موږ د نړۍ په اقتصادي کچه نه یوازې د افغانیو ارزښت ته درناوی کولی شو، بلکې له خپلو داخلي اقتصادي منابعو څخه هم ګټه اخیستلای شو. د دې بدلون لپاره، د حکومت، سوداګرو، پانګوالو او عامو خلکو همکارۍ ته اړتیا ده. که موږ ټول په ګډه د افغانیو د ارزښت لوړولو لپاره کار وکړو، نو نه یوازې دا چې افغانۍ به د هېواد په بازارونو کې پیاوړې شي، بلکې د افغانستان اقتصادي ځواک به هم په نړیواله کچه معرفي شي.

په دې توګه، دا یوازې د یوې پیسې پر ارزښت باندې تمرکز نه دی، بلکې د یوې ملي ارادې په لور حرکت دی چې د افغانستان د اقتصادي خپلواکۍ، ټولنیز ثبات او پراختیا لپاره خورا مهم دی. د افغانیو د ارزښت ساتنه او لوړول د هېواد د اقتصادي پیاوړتیا لپاره مهم ګام دی او د دې کار لپاره باید هر افغان خپله برخه کار وکړي.

د افغانستان په څېر هېواد کې، د افغانیو ارزښت د اقتصادي خپلواکۍ، ټولنیز ثبات او پراختیا






لپاره یو حیاتي عنصر دی. کله چې د هېواد کرنسي، لکه افغانۍ، خپل ارزښت له لاسه ورکړي، نو په دې سره بیې لوړېږي، تولیدي سکتور ټکنۍ کېږي، پانګونې کمېږي او د خلکو د ژوندانه شرایط له زیاتو مشکلاتو سره مخ کېږي. دا وضعیت نه یوازې د ټولنیز او اقتصادي ثبات په وړاندې خنډ ګڼل کېږي، بلکې د هېواد داخلي اقتصاد د نړۍ له نورو اقتصادي واحدونو سره د رقابت لپاره مناسبه زمینه نه شي برابرولی. د دې ستونزو حل په دې کې دی چې د افغانیو ارزښت وساتل شي او دا یوازې د حکومت کار نه بلکې د ټولنې، سوداګرو، پانګوالو او عامو خلکو همکاري ته هم اړتیا لري.

د افغانیو ارزښت د لوړولو لپاره د اسلامي امارت حکومت بې ساري تدابیر نیولي دي. مرکزي بانک د خپلې پالیسۍ له لارې د افغانیو د ارزښت ساتلو لپاره هڅې کړې دي. د دې ترڅنګ، د بهرنیو اسعارو د کارولو محدودولو او د افغانیو د ارزښت لوړولو لپاره د مختلفو اقتصادي تدابیرو پلي کول د دې لپاره اساسي ګامونه بلل کېږي. د دې لپاره، د صادراتو زیاتول، د داخلي تولیداتو پراختیا او د پانګونې جذبول د افغانیو ارزښت ته وده ورکوي. د حکومت له خوا د سوداګریزو اړیکو پراختیا او د تولیدي سکتور د پیاوړتیا لپاره په ځانګړې توګه پام شوی. دا اقدامات د افغانیو د ارزښت د پیاوړتیا لپاره خورا مهم دي، ځکه چې د صادراتو زیاتوالی د افغانیو د ارزښت ملاتړ کوي او د تولیدي سکتور پراختیا د پانګونې جذبولو لپاره زمینه برابروي.

د اسلامي امارت د مرکزي بانک اقدامات یوازې کافي نه دي، بلکې د سوداګرو او پانګوالو همکاري هم خورا مهمه ده. سوداګران او پانګوال باید خپلې معاملې پر افغانیو ترسره کړي، ځکه چې په دې سره نه یوازې د افغانیو ارزښت ته وده ورکول کېږي، بلکې د افغانستان د تولیدي سکتور لپاره یوه مثبته فضا رامنځته کېږي. که سوداګر پر افغانیو خپلې سوداګرۍ ترسره کړي، نو د هېواد د داخلي تولیداتو کچه به زیاته شي او دا به د افغانیو د ارزښت ساتلو لپاره مهم ګام وي. د دې ترڅنګ، د داخلي پانګونې جذبول او د صادراتو زیاتول هم د افغانیو ارزښت کې مثبته اغیزه لري. که افغانستان خپل داخلي تولیدات زیات کړي، دا به د هېواد د اقتصادي پرمختګ او د افغانیو د ارزښت لوړولو لپاره یو ستر ګام وي. د خلکو همکاري د افغانیو د ارزښت ساتلو لپاره حیاتي ده. کله چې خلک د افغانیو کارولو ته لومړیتوب ورکړي، نو د دې کرنسۍ ارزښت ته به وده ورکړي او د بهرنیو اسعارو پر ځای به د ملي پیسو کارول زیات شي. د دې لپاره، حکومت باید د افغانیو د ارزښت په اړه د عامه پوهاوي د زیاتولو لپاره ګامونه پورته کړي. د خلکو اقتصادي پوهه د دې لامل کېږي چې دوی د افغانیو ارزښت ته پام وکړي او خپلې معاملې پر افغانیو کې ترسره کړي. د دې لپاره، حکومت باید د خلکو په منځ کې د افغانیو د ارزښت د اهمیت په اړه پوهه پراخه کړي.

د افغانستان د تولیدي سکتور پراختیا د افغانیو د ارزښت لوړولو لپاره یوه ستره زمینه برابروي. که افغانستان له خپلو ځمکنیو او طبیعي منابعو څخه په غوره توګه ګټه واخلي، د ټکنالوژۍ په برخه کې پانګونه زیاته کړي او د فني مهارتونو د لوړولو لپاره ځانګړي پروګرامونه پلي کړي، نو دا به د افغانیو ارزښت ته وده ورکړي. د ټکنالوژۍ او نوښت په برخه کې پرمختګ د تولیدي سکتور د پراختیا لامل کېږي او دا د افغانیو د ارزښت لوړولو لپاره مهم دی. په دې توګه، د افغانستان د اقتصادي پرمختګ لپاره باید نه یوازې د داخلي پانګونې جذبولو ته پام وشي، بلکې د بهرنیو پانګوالو لپاره هم یوه مناسبه فضا رامنځته شي...

۳مخ



# افغان اعلانات



**اعلان مجدد دعوت به داوطلبی**

ریاست عمومی شرکت امارتی آبرسانی و فاضلآب شهری از تمام داوطلبان واجد شرایط دعوت می نماید تا در پروسهٔ داوطلبی پروژه تدارک ۱٦۳۹ کیلو گرام پودر کلورین مورد ضرورت زون های ریاست عمومی شرکت امارتی آبرسانی و فاضلاب شهری با خدمات ضمنی (انتقال بدوش اکمال کننده می‌باشد) که تحت شماره داوطلبی RE-BIDUWASS-SOC/1403/NCB/G/010 می‌باشد، اشتراک نموده و نقل شرطنامه مربوط را در بدل مبلغ (۵۰۰) پنج‌صد افغانی پول غیر بازگشت از ریاست تدارکات بدست آورده و آفرهای خویش را مطابق شرایط مندرج شرطنامه و طبق قانون و طرزالعمل تدارکات طور سر بسته از تاریخ نشر اعلان الی ۲۱ روز تقویمی ساعت ۱۰:۰۰بجهٔ قبل از ظهر به ریاست عمومی شرکت امارتی آبرسانی و فاضلآب شهری واقع سر تپه کارته نو ناحیه هشتم شهر کابل ارائه نمایند، آفرهای نا وقت رسیده و انترنتی به هیچ وجه قابل پذیرش نمی‌باشند، تضمین آفر به گرانتی خط بانکی یا پول نقد مبلغ (۲۵,۰۰۰) بیست و پنج هزار افغانی می‌باشد. جلسه آفرگشائی پروژه یاد شده ساعت ۱۰:۰۰ بجهٔ قبل از ظهر که تاریخ آن درج شرطنامه مربوط می‌باشد در اتاق کنفرانس های ریاست عمومی شرکت امارتی آبرسانی و فاضلآب شهری تدویر می گردد

**اطلاعیه مزایده پشتنی بانک**

به اساس قرار قضایی نمبر ۲۱۱ مورخ ۱۳۹۰/۵/۳۱ محکمه ابتدائیه تجارتی ولایت کابل و تجویز نمبر ۴۱۷ بر ۳۵۱ مورخ ۱۴۴۶/۵/۲۳ ریاست محکمه اختصاصی ولایت کابل، یک باب مارکیت مندرج قباله شرعی نمبر ۳۷۷/۳۸ مورخ ۱۳۸۱/۴/۴ اسمی سید کریم فرزند میرغلام سخی واقع ناحیه چهارم شهر کابل مقابل مارکیت میوه ، که از طرف شرکت واعظی در مقابل قرضه تحت تضمین پشتنی بانک قرار دارد ، به اساس محضر تاریخی ۱۴۴۶/۷/۲۵ هیت مختلط تطبیق محترم محمد غوث فرزند عزت الله با ارایه مبلغ ( ۱۱۳،۵۰۰،۰۰۰ ) افغانی برنده مجلس داوطلبی اعلان گردیده است.

بناء اشخاص حقیقی و حکمی که تقاضای خرید آنرا بالاتر از مبلغ ارایه شده داشته باشند میتوانند درخواست های خویش را بعد از نشر اعلان در مدت ۱۴ یوم به ریاست محترم حقوق ولایت کابل و مدیریت عمومی حصول تمویل مالی بانک بسپارند. و به اطلاع مسولین شرکت واعظی نیز رسانیده میشود تا در مجلس مزایده حضور یابند در غیر آن حق شکایت را ندارند.

**د ښتني بانک د مزایدي خبرتیا**

د کابل ولایت د لومړۍ محکمې د ۱۳۹۰/۵/۳۱ نېټې (۲۱۱) ګڼې قضایی قرار او د کابل ولایت د اختصاصی محکمی د ۱۴۴۶/۵/۲۳ نېټې ۴۱۷ پر ۳۵۱ ګڼې تجویز په اساس سید کریم د میر غلام سخي زوی په نامه یو باب مارکیټ چي ۱۳۸۱/۴/۴ نېټې ۳۸ پر ۳۷۷ ګڼې شرعی قبالې درلودونکی دی او د کابل ولایت د میوې مارکیت مخامخ په څلورمه ناحیه کي موقعیت لري د واعظی شرکت د پور پر بنسټ د بانک تر تضمین لاندي قرار داد لري د تطبیق پلاو د ۱۴۴۶/۷/۲۵ نېټې د محضر پربنسټ ، ښاغلی محمد غوث د عزت الله زوی د داوطلبی په ناسته کي ( ۱۱۳،۵۰۰،۰۰۰ ) افغانیو په وړاندې کولو سره ګټونکی اعلان کړی دی .

نوهغه قدرمن حقیقي او حکمی اشخاص چي د پورته مبلغ څخه په لوړه بیه د پیرولو غوښتنه یی لری کولای شي خپل غوښتنلیک د خبرتیا له خپریدو څخه تر ۱۴ ورځو پوری د کابل د حقوق ریاست او یا د بانک تمویل راټلوني لوي مدیریت ته وسپاری .

د واعظی شرکت مسولینو ته خبر ورکول کیږی چې د مزایدې جلسه کي ګډون وکړي تردی پرته به راتلونکی مسولیت د بانک پرغاړه نه وي.۹۰۴۰

**اطلاعیه فروش موتر**

اسامی محترم خورشید هرات لمتید یک عراده موتر پلیت ۶۳۹۵۵-۲ ش کابل نوع تیوتا کرولا سالون جاپانی خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای محمد کبار فرزند محمد زمان بفروش رسانیده است.

بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند. ۹۰۵۶

**اطلاعیه بکرایه دهی**

شرکت افغان اسپنتا میخواهد گدام آسیاب نمبر دوم ، یک باب هنگر ،اطاق کارگران ، اطاق دفتر و اطاق ترازو ملکیت شرکت امارتی سیلوی مرکز که به مساحت ۵۵۱/۳۲ متر مربع میشود ماهوار به افزودی ٪۲۰ بالای کرایه قبلی مبلغ ۴۸۰۰۰ افغانی برای مدت سه سال به کرایه بگیرد.

شرکت های خصوصی ، ادارات دولتی و موسسات که خواهش گرفتن آنرا بالاتر از مبلغ متذکره داشته باشند درخواست های خویش را از نشر اعلان به مدت ۲۱ روز به مدیریت تولیدات احصائیه و قرار داد های آمریت پلان سیلوی بسپارند . شرطنامه را اخذ و بروز داوطلبی حاضر درمجلس گردند. ۹۰۵۷

**اطلاعیه تغیر مکان رهنمای معاملات**

دفتر رهنمای معاملات سالم نظامیار دارنده جواز شماره (۶۰۲۴ ) به اسم محترم سالم فرزند رازق داد واقع ناحیه ۹مقابل تانگ تیل قابل بای موقعیت دارد و میخواهد به ساحه سرک پنجم تایمنی ناحیه ۴ شاروالی کابل نقل مکان نماید . بناء مراتب به آگاهی شما رسانیده شد.۹۰۷۲

**اطلاعیه مفقودی**

یک قطعه قباله شرعی نمبر ۲۲۳۰/۴۹۲ مورخ ۱۳۶۲/۸/۲ مرتبه محکمه وثایق خیر خانه جایداد واقع ناحیه ۱۱ هوتل پروان به اسم نجیب الله فرزند عبدالوهاب ولدیت خیر محمد مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۰۵۵

**اطلاعیه مفقودی**

یک جلد کتابچه صفایی خانه واقع ناحیه اول کابل به اسم سید قند آغا فرزند سید منصور شاه مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۰۶۰

***

اطلاعیه مفقودی

یک قطعه ایروبل گمرکی دارای نمبر ۵۱۴۰۱۰۸۴۶۲۷۵ به اسم خالد وهاب نوری مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۰۶۹

**اعلان داوطلبی**

**{ پروژه اعمار دیوار احاطه به طول ۲۲۴۸ متر تیر پارک پشته سرخ ولایت پروان**
**MOTA/1403/ /W-282-Rebid }**

وزارت محترم ترانسپورت و هوانوردی از تمام داوطلبان واجد شرایط دعوت می نماید تا در پروسه داوطلبی **پروژه اعمار دیوار احاطه به طول ۲۲۴۸ متر تیر پارک پشته سرخ ولایت پروان** دارنده شماره تشیخصیه MOTA/1403/**W-282-Rebid** نموده و نقل چاپ شده شرطنامه مربوط را در حافظه یا فلش دسک مستقیماً از وزارت ترانسپورت و هوانوردی بدست آورده, آفر های خویش را مطابق شرایط مندرج شرطنامه طور سر بسته از تاریخ نشر اعلان الی 22 روز تقویمی ریاست تدارکات/ آمریت تدارکات / وزارت ترانسپورت و هوانوردی واقع انصاری وات شش درک جوار رادیو تلویزون ملی ارائیه نمایند آفر های ناوقت رسیده و انتر نیتی پذیرفته نمی شود. تضمین آفر بانکی مطابق به مندرجات شرطنامه اخذ میگردد.

| شماره | نام | وظیفه | شماره تماس |
|---|---|---|---|
| ۱ | محمد عمر منصوری | آمر هماهنگی ولایات | ۰۷۰۰۲۱۸۲۱۹ |
| ۲ | محمدشفیق ژمن | آمر تدارکات | ۰۷۰۰۹۰۰۸۹۰ |
| ۳ | انجنیر نصیر احمد ایوبی | کارشناس ارشد تدارکات امور ساختمانی | ۰۷۶۵۲۸۰۸۹۷ |

## پر افغانیو راکړه ورکړه ...

د افغانیو ارزښت د نړیوالو اسعارو په وړاندې د پیاوړتیا لپاره، د نړیوالو اقتصادي شریکانو سره همکارۍ پراختیا هم ضروري ده. د دې همکارۍ له لارې، افغانستان کولی شي د صادراتو کچه زیاته کړي، د پانګونې جذبولو لپاره یوه غوره فضا رامنځته کړي، او د افغانیو ارزښت د نړیوالو اسعارو په وړاندې لوړه کړي. د دې ترڅنګ، د ټیکنالوژۍ او نوښت په برخه کې د پرمختګ لپاره د ښه چاپیریال جوړول د افغانیو ارزښت ته وده ورکوي. کله چې افغانستان د خپلو اقتصادي سرچینو څخه په اغیزمنه توګه ګټه واخلي، نو د افغانیو ارزښت به نه یوازې د داخلي ټینګښت لپاره بلکه د نړیوالو اقتصادي واحدونو سره د رقابت لپاره هم پیاوړی شي.

د افغانیو ارزښت د ساتنې لپاره د حکومت او خلکو ترمنځ همغږي او ګډه همکاري اړینه ده. دا همکاري به د افغانیو ارزښت ته وده ورکړي، د افغانستان اقتصادي وضعیت به باثباته کړي او د ټولنې پراختیا ته به وده ورکړي. د دې همکارۍ له لارې، افغانستان کولی شي د افغانیو ارزښت د ډالرو او نورو نړیوالو اسعارو په وړاندې لوړ کړي. د دې لپاره چې د افغانیو ارزښت په ټوله نړۍ کې د باور وړ شي، افغانستان باید د خپلو تولیداتو کیفیت لوړ کړي، د خپل اقتصادي سکتور د پراختیا لپاره مناسب تدابیر ولري او له نړیوالو اقتصادي شریکانو سره د همکارۍ پراختیا ته هم پام وکړي.

په دې توګه، د افغانیو ارزښت ساتل او لوړول یوازې د حکومت د پالیسۍ او د مرکزي بانک په تدابیرو پورې تړلي نه دي، بلکې د ټولې ټولنې، پانګوالو، سوداګرو او حتی عامو خلکو همکارۍ ته اړتیا لري. د افغانیو د ارزښت په پیاوړتیا کې د داخلي تولیداتو زیاتوالی، د صادراتو پراختیا، د پانګونې جذبول او د ټکنالوژۍ او نوښت په برخه کې پرمختګ بنسټیز رول لري. که هر افغان د افغانیو ارزښت ته پام وکړي، نه یوازې دا چې د دې پیسې ارزښت لوړوي، بلکې د افغانستان اقتصادي خپلواکي، ټولنیز ثبات او پراختیا ته هم وده ورکوي.

د حکومت او خلکو ګډې هڅې کولی شي د افغانیو ارزښت د بهرنیو اسعارو پر وړاندې پیاوړی کړي او افغانستان له نړیوالو اقتصادي واحدونو سره د رقابت په لور روان کړي. د افغانیو ارزښت د پیاوړتیا لپاره باید د داخلي پانګونې زیاتوالی، د صادراتو پراختیا او د اقتصادي پوهې پراختیا په یوه ستراتیژیکه لاره کې یو ځای شي. که موږ ټول د افغانیو ارزښت ته درناوی وکړو او د پراختیا لپاره یې کار وکړو، نو نه یوازې به د افغانیو ارزښت لوړ شي، بلکې افغانستان به د یو پیاوړي او مستقل اقتصادي ځواک په توګه په نړیواله کچه خپل ځای پیدا کړي.

د افغانیو د ارزښت ساتنې لپاره د همغږۍ، ګډې همکارۍ او ستراتیژیکو تدابیرو اړتیا ده، چې یوازې په ګډه سره د ټولو اړخونو همکاري کولی شي په دې هدف کې بریالیتوب ترلاسه کړي. د دې پروسې لپاره، د اسلامي امارت، د سوداګرو، پانګوالو، او د افغانانو په کچه د پوهاوي زیاتول، د تولیدي سکتور پراختیا، او د نړیوالو اقتصادي اړیکو پراختیا باید په یوه ګډه لاره کې پر مخ ولاړ شي. نو په دې توګه افغانستان کولی شي د افغانیو ارزښت د ډالرو او نورو نړیوالو اسعارو په وړاندې لوړ کړي او د خپل اقتصادي وضعیت ټینګښت یقیني کړي.

## د افغانۍ ارزښت ...

لا شفاف او د بهرنیو اسعارو د غیرقانوني کاروبار مخنیوي ته جدي پاملرنه وکړي، که د اسعارو تبادله یوازې د رسمي بانکي سیستم له لارې ترسره شي، نو د افغانۍ ارزښت به ثبات ومومي.د پانګوالو د جلبولو لپاره اسانتیاوې برابرول: که د افغانستان اسلامي امارت د پانګوالو لپاره غوره فرصتونه برابر کړي او د پانګونې لپاره اسانتیاوې رامنځته کړي، نو ډېر داخلي او بهرني پانګوال به زړه ښه کړي، چې دا به د افغانۍ د ارزښت ساتلو لپاره خورا مهم رول ولوبوي.

د زرمبادلې زېرمې زیاتول: افغانستان باید هڅه وکړي، چې د اسعارو زېرمې زیاتې کړي. که د افغانستان بانک د زرمبادلې کافي ذخایر ولري، کولی شي هر وخت د اړتیا پر مهال بازار ته ډالر عرضه کړي، چې دا کار د افغانۍ د ثبات لپاره ګټور دی.

د خلکو د مالي پوهاوي لوړول: د عامو وګړو مالي پوهاوی د دې لپاره اړین دی، چې د اسعارو د بازار د خرابوالي لامل نشي. که خلک پوه شي، چې د ډالر ناڅاپي پېرودل او ذخیره کول د افغانۍ ارزښت ته زیان رسوي، نو دوی به د خپل اقتصاد د ثبات لپاره مسئولانه چلند غوره کړي.

د افغانۍ د ارزښت لوړوالی د افغانستان د اقتصادي ثبات لپاره مهم پرمختګ دی. د افغانستان اسلامي امارت، په ځانګړي ډول د افغانستان بانک باید د دې ثبات د دوام لپاره اوږدمهاله ستراتېژۍ ولري. د داخلي تولیداتو وده، د اسعارو د بازار کنټرول، د بانکي نظام پیاوړی کول او د پانګوالو جلبول هغه حللاري دي، چې د افغانۍ ارزښت به ثابت وساتي. که دا سیاستونه په دوامداره توګه تعقیب شي، افغانستان به نه یوازې د خپلو اسعارو ارزښت وساتي، بلکې اقتصادي پرمختګ به هم وکړي.

## فلسطین کې د حماس غورځنګ ...

د همدغو د رهبرۍ په کچه شهیدانو او د دې مبارزې د ټولو شهدانو په قربانیو یو ځل بیا په نړیواله کچه پر یوې مطرح قضیې بدله شوې او د حماس اسلامي غورځنګ د خپلو قربانیو په برکت په سیاسي او نظامي ډګرونو کې له پخوا لا ډېر قوي او غښتلی شوی دی.

## د ازبیکستان او افغان خصوصي ...

بله خوا د صنعت او سوداګرۍ وزیر د دواړو هېوادونو ترمنځ په کال کې د محصولاتو او تولیداتو لپاره د ترمز نړیوال سوداګریز مرکز کې د پنځو نندارتونونو د جوړېدو غوښتنه کړې. د یادونې وړ ده، چې د افغان خصوصي سکټور او ازبیکستاني پلاوي ترمنځ د ۴.۵ میلیونو ډالرو په ارزښت سوداګریز تړونونه هم لاسلیک شوي.

## کوریای جنوبی ۳ میلیون دالر ...

کوریای جنوبی پیش از این نیز به صندوق انساندوستانه افغانستان و بخش افغانستان برنامه جهانی غذای سازمان ملل متحد کمک کرده است.

## د افغانستان ټول قومونه ...

د پراختیا لپاره هم ګټور دی. د کونړ د سرحدونو، قومونو او قبایلو چارو رئیس مولوي ارشاد غازي وویل، چې په هېواد کې قومي نابرابري او زورواکي پای ته رسېدلې او اوس ټول قومونه د متحد او پرمختللي افغانستان فکر لري.د ده په وینا: د اسلامي امارت په راتګ سره د قومونو ترمنځ شخړې د خبرو او جرګو له لارې هوارېږي. ورته وخت کې له نیمروز، بادغیس، فراه او هرات ولایتونو څخه راغلو قومي مشرانو خوښي څرګنده کړه چې د اسلامي امارت په راتګ سره په ټول هېواد کې امنیت ټینګ شوی او د قومونو د یووالي او پرمختګ لپاره هڅې رواني دي. د هرات قومي مشر شاه محمد وویل: (( زموږ د سفر موخه نړۍ ته د افغانستان خپلواکي، امنیت او قومي یووالي ښکاره کول دي او هغوی چې د افغانستان د ورانولو یا تجزیې فکر لري، باید پوه شي چې افغانستان خپل اصلي مالک پیدا کړی او قومونه سره متحد شوي دي»امنیتي ځواکونو راغلو مشرانو ته ډاډ ورکړ چې د دوی ملاتړ یې مورال لا پیاوړي کړی دی او ژمنه یې وکړه چې د هېواد د خاورې او ملت د ساتنې لپاره به په مېړانه خپلې دندې ترسره کوي.

## فاریاب کې د مهاجرینو ...

ښاغلي انجنیر لطیف وایي: د همدغې تخنیکي کمېټې د غړو په هڅو او زیار یې فاریاب کې د مهاجرینو ښارګوټي د تفصیلي پلان چارې بشپړې کړې.نوموړی وایي: یاد ښارګوټی د فاریاب په دولت آباد ولسوالۍ کې موقعیت لري چې، په څلور زره (٤۰۰۰) جریبه ځمکه کې ورته تفصیلي پلان جوړ شو. دی وایي، دغه پلان کې دوه زره، شپږ سوه او شل (۲٦۲۰) نمرې په پام کې نیول شوي چې د شپږویشت زره او دوه سوه (۲٦۲۰۰) اشخاصو ظرفیت به ولري.د کور او ښار جوړولو وزارت هڅې پیل کړي چې، د مهاجرینو د ارام اوسېدو په موخه ورسپارل شوې دندې او مسئولیتونه په سمه توګه او لږ وخت کې سرته ورسوي.

## له هرات څخه بهر ته د پستې ...

صادرات شوي دي.له دې ولایته بهر ته کرنیز محصولات، وچه مېوه، معدني مواد او زینتي کاڼي شامل دي.د هرات کشک‌رباط سنګي، کشک‌کهنه، کهسان، ادرسکن او شینډنډ ولسوالۍ د پستې پر پراخو للمي او اوبیزو ځنګلونو پوښلې دي.

## اسلام آباد په افغانستان کې ...

که دا خبر رښتیا وي، نو آی اېس آی به دغه چارواکي افغانستان کې د تاوتریخوالي د خپرولو لپاره وکاروي.نوموړي خبرداري ورکړي، که دغه چارواکي د آی اېس آي په لوبو کې ښکیل شي نو پاکستان به له هغوی څخه د معاملې د وسیلې په توګه کار واخلي. دا په داسې حال کې ده، چې د پاکستان د شخړو او امنیتي مطالعاتو انستیټیوت (PICSS) په خپل تازه راپور کې ویلي چې د روان میلادي کال د جنورۍ میاشتې پرمهال پاکستان کې ۷۴ د امنیت ضد پېښې ثبت شوې دي.د راپور له مخې، په دې پېښو کې لسګونه تنه وژل شوي او څه باندې ۱۰۰ تنه ټپیان دي.

## له پاکستان څخه په زور د افغان ...

د افغاني ټولنې لپاره، چې ډېری یې له لسیزو راهیسې په پاکستان کې ژوند کوي ژوره اندېښنه بولو، د کډوالو په چارو کې د ملګرو ملتونو عالي کمیشنري او د کډوالۍ نړیوال سازمان د افغان کډوالو د ملاتړ په برخه کې پر خپلو ژمنو ټینګار کوي او له پاکستاني چارواکو څخه د نویو حکمونو په اړه د نور وضاحت غوښتنه لري.په جبري ډول د افغان کډوالو د ایستلو په تړاو د پاکستان دغه پرېکړه له کورنیو او نړیوالو غبرګونونو سره مخ شوې او تازه د پاکستان د مشرانو جرګې پخواني غړي افراسیاب خټک ویلي، چې له پاکستان څخه په زور د افغان کډوالو اېستل، له نړیوالو قوانینو سرغړونه ده.پاکستان کې افغان کډوال وایي: دا هېواد په زور د افغان کډوالو د اېستلو له امله په ښکاره د کډوالۍ برخه کې له نړیوالو قوانینو څخه سرغړونه کوي. دوی د کډوالۍ پر نړیوالو سازمانونو غږ کوي، چې په پاکستان کې د مېشتو افغان کډوالو لاسنیوي وکړي.بله خوا اسلام اباد کې د اسلامي امارت سفیر مولوي سردار احمد شکیب د پاکستان له حکومت څخه غوښتنه کړې، چې د افغان کډوالو د ایستلو روانه لړۍ ودروي او خپله دغه یو طرفه پرېکړه بېرته واخلي.دا په داسې حال کې ده، چې پاکستاني پولیسو ۱۴۱ تنه افغان کډوال چې پاکستان کې یې د اوسېدو قانوني اسناد هم درلودل، نیولي وو ،خو د اسلامي امارت د سفارت د هڅو په پایله کې دوی تورخم ته را ولېږدول شول.

## ننګرهار کې د صنعتي ښارګوټي ...

ولایت په صنعتي ځان بسیاینې کې یو مهم بدلون بولي او وایي، چې تمه کېږي په روداتو کې د صنعتي ښارګوټي جوړېدو سره به سلګونو کسانو ته د کار فرصتونه برابر شي، د بومي تولیداتو د ودې لامل به شي او د وارداتو کچه به راټیټه کړي.

## اسرائیلو اشغال شوې ...

وېجاړې کړې دي.د راپور له مخې، اسرائیلي یرغلګرو د تېرو دوو اوونیو په ترڅ کې په اشغال شوې لویدیځه غاړه کې ۵۰ فلسطینیان شهیدان کړي دي.له هغې ورځې راهیسې چې په غزه کې اوربند پیل شوی اسرائیلي پوځیانو اشغال شوې لویدیځه غاړه کې د فلسطینیانو پر ضد د (( وسپنیز دیوال)) په نامه پراخ عملیات پیل کړي دي.دا په داسې حال کې ده، چې وړمه ورځ شپږو عربي هېوادونو (قطر، مصر، متحده عربي اماراتو، سعودي عربستان، اردن او فلسطین) د امریکا د ولسمشر ډونالډ ټرمپ له هغه وړاندیز سره مخالفت کړي، چې له غزې څخه د فلسطینیانو د ایستلو غوښتنه پکې شوې ده.

## د اوبو مدیریت د اسلامي امارت ...

مولوي مطیع الحق خالص د مرسي کورپس نړیوالې موسسې د تخنیکي مشاور هر کلی کړی او ویلي یې دي: د اوبو مدیریت بشري اړخ لري او دا د ډېر اهمیت وړ موضوع ده، چې اسلامي امارت په خپلو لومړیتوبونو کې ورته ځای ورکړی.نوموړي زیاته کړې: د افغانستان ۱۸سلنه طبیعي یخچالونه د اقلیمي بدلونونو له کبله اوبه شوي او دا د دې ښکارندویي کوي ،چې افغانستان د وچکالۍ خوا ته روان دی، ښه بیلګه یې د هېواد د جنوبغرب زون د وروستیو کلونو وچکالي ده.مولوي مطیع الحق خالص ویلي: په وروستیو کلونو کې د ځمکې لاندې اوبو څخه په غیر معیاري ډول استفاده د دې سبب شوې، چې د ځمکي لاندې اوبه کمې شي ،چې یواځې د کابل اوبه له ۱۱۰ څخه تر ۱۲۰ مترو پورې ښکته تللي دي.ښاغلي خالص زیاته کړې:د اوبو مدیریت او مهارول په بېلابېلو امارتي ادارو پورې اړه لري او موږ هم په دې برخه کې کار کوو ترڅو ټولې امارتي ادارې خپل لومړیتوبونه په پام کې ونیسي او له تاسو سره یې شریک کړي.

همدارنګه د لیدنې په پای کې د ګډ کار کولو ژمنه شوې او ټینګار شوی، چې له دواړو خواوو څخه تخنیکي ټیمونه معرفي شي ،ترڅو د اوبو د مدیریت پر طرحو کار وشي او لازم اجراءات ترسره شي.

## د پلټونې بند د جوړولو ...

د برښنا د تولید لپاره مهم بولي او ټینګار کوي ،چې باید د انرژۍ د تولید په برخه کې د پانګونې زمینه برابره شي. د اقتصادي چارو شنونکی، عبدالبصیر تره کي وایي: (( موږ باید پر خپلو سرچینو کار وکړو، په ځانګړي ډول موږ د کونړ او پنجشېر سیندونه لرو او که ټول افغانستان ته وګورو، کولای شو له ۳۰ تر ۳۳ زره میګاواټه برښنا له خپلو سرچینو ترلاسه کړو.))د اقتصادي چارو بل شنونکی، قطب الدین یعقوبي هم وایي: (( دغه راز پروژې د اوبو د مدیریت، د کرنې وضعیت د ښه کولو، د انرژۍ د تولید او د کاري زمینو د رامنځته کولو په برخه کې ګټورې دي.))

د پکتیکا د مرکز ښرنې په ۱۲ کیلومترۍ کې د پلټونې بند ۳۰ متره لوړوالي، ۲۶۰ متره اوږدوالي او ۱۱۲ متره پلنوالي لري.دغه بند د موسمي اوبو د زېرمه کولو، د کرنې د ودې او د برښنا د تولید په موخه د ۸۵۱ میلیونو افغانیو په لګښت جوړیږي.

## نشستی به منظور استفاده معقول ...

((خوشحال هستیم که در مورد اقتصاد کشور و پروژه‌های اقتصادی بحث می کنیم. طرح زمین‌های اطراف قوشتیپه یک طرح جامع و به نفع ملت است.))

در ادامه، مسئولین حاضر در جلسه پیرامون اهمیت زمین‌ها در محیط قوشتیپه، مراقبت از این زمین‌ها، اصلاح خاک، شناسایی نوع خاک و وضعیت اقلیمی آن بحث کردند. این پروژه به هدف بهبود و استفاده بهینه از منابع طبیعی در راستای رشد اقتصادی کشور طراحی شده است. متخصصان و مسئولان ارشد تاکید کردند که این طرح می‌تواند نقش بسزایی در تقویت زراعت و توسعه پایدار کشور ایفا کند.

## له لغمان څخه سلګونه ...

ویلي چې دغه پروسه یې له تېرو ۶ میاشتو راهیسې پیل کړې وه، چې له مخې یې ۵۰۰ تنه په نشه‌یي توکو روږدي کابل ته د درملنې په موخه انتقال کړي دي: د لغمان ولایت له بېلابېلو سیمو څخه چې ولسوالۍ هم پکې شاملې دي ۵۰۰ تنه په نشه‌یي توکو روږدي کسان د کابل ۱۰۰۰ بستریز او ۴۵۰ بستریزو روغتونونو ته لېږدول شوي دي؛ دلته لغمان کې هم موږ پر نشه‌یي توکو روږدو ته ۳۰ بستریز روغتون لرو، خو ددې لپاره چې په ښه شکل تداوي شي، پر دې سربېره یې مرکز(کابل) ته هم لېږو.ښاغلي نیازي زیاتوي: د نشه‌یانو راټولولو برخه کې اسلامي امارت ځانګړې پاملرنه کړې، خصوصاً لغمان کې، نشه‌یانو ته پلانونه لرو، موږ هڅه او کوښښ کوو، چې دوی راټول کړو، کوم چې دلته ظرفیت وي، بستروو یې او نور یې کابل ته لېږو. باور دا دي چې پر نشه‌یي توکو روږدي کسان نه یوازې روغتونونو ته اړتیا نلري، بلکې په ټولنه کې یوې ځانګړې پاملرنې ته هم اړتیا لري او دوی د دې پړاو پرځای چې له ځانه وشړل شي، باید په مینه او ترحم ورسره چلند وشي او له دې اړخه یې هم روغتیا ډاډمنه شي؛ ټولنه باید درک کړي چې له دغو اشخاصو سره بدچلند د هغوی په ژوند کې ستونزې زیاتوي او له مرګوني ګواښ سره یې مخامخ کوي. تاج محمد بهار

## د افغانستان بانک څخه ...

د افغانۍ د ثبات، د بیو د ثبات او اقتصادي ټیکاو لپاره اړین اقدامات تر سره کړي دي.ښاغلي خالد زیاته کړه: افغانۍ د هېواد ملي هویت دی او هېوادوال په ځانګړې توګه سوداګر، باید دا پولي واحد د خپلو سوداګریزو راکړو ورکړو پر مهال وکاروي.د نوموړي په خبره: څو ورځې وړاندې د افغانۍ د مبادلې نرخ کې بدلون راغلی و، خو د افغانستان بانک د اړینو اقداماتو له لارې بازار بېرته عادي حالت ته راوګرځاوه.د افغانستان بانک لومړي مرستیال درنو هېوادوالو ته ډاډ ورکړ، چې موږ کافي مالي سرچینې لرو او هر کله چې اړتیا ولیدل شي د معقولو پولي سیاستونو په پام کې نیولو سره اړین ګامونه پورته کېږي. په یاده غونډه کې د سوداګرۍ او پانګونې خونې مرستیال محمد یونس مومند د افغانۍ د ارزښت او ثبات ساتنه ګډ مسئولیت یاد کړ.ښاغلي مومند له د افغانستان بانک څخه مننه وکړه، چې د افغانۍ د ارزښت ساتنې په موخه یې پر وخت اړین ګامونه پورته کړل او وضعیت یې په ښه ډول مدیریت کړ.نوموړي زیاته کړه، افغانۍ دا مهال په نړیواله کچه د غوره ثبات لرونکو پولي واحدونو په کتار کې ځای لري او په کار ده ،چې ټول هېوادوال په ځانګړې توګه سوداګر یې په سوداګریزو راکړو ورکړو کې وکاروي. غونډه کې د صرافانو د ټولنې مشر بهرام خان ځدراڼ وویل: د افغانستان بانک له خپلې ژمنې سره سم اړین ګامونه پورته کړل او د اسعارو پر وړاندې د افغانۍ په نرخ کې د رامنځته شویو تغیراتو مخنیوي یې وکړ.ښاغلي ځدراڼ زیاته کړه، عام خلک باید په بې بنسټه آوازو باور و نه کړي او ډاډمن اوسي چې مسئولې اداري پر وخت اقدامات تر سره کوي.د افغانستان د سوداګرۍ او پانګې اچونې خونې مرستیال خان‌جان الکوزي د هېواد په اقتصادي رغښت کې د سوداګرو رول د ارزښت وړ یاد کړ.نوموړي د دولت او خصوصي سکټور تر منځ ګډه همکاري او همغږي مهمه یاده کړه او په دې برخه کې یې پر لا زیاتې همکارۍ او همغږۍ ټینګار وکړ.

## د کابینې غونډه کې ...

وسپارل شول، تر څو یې چارې نهایي کړي او ګزارش یې د کابینې غونډې ته وړاندې کړي.

دغه راز یو پلاوي ته دنده وسپارل شوه ترڅو ننګرهار ولایت کې د صنعت او سوداګرۍ په برخه کې د سوداګرو ستونزو ته په ښه توګه رسېدنه وکړي، چې اسانتیاوې ورته برابرې کړي او هر اړخیزه همکاري ورسره وکړي.

پر دې سربېره د ریاست الوزراء اداري مرستیال مولوي عبدالسلام حنفي ته دنده وسپارل شوه چې د دفاع او کورنیو چارو وزارتونو او د استخباراتو لوی ریاست له مسئولینو سره د هېواد په لرې پرتو سیمو کې د مېشتو امنیتي مسئولینو او منسوبینو د مشکلاتو د حل په اړه ناسته وکړي.

د کابینې دا غونډه د خیر په دعا پای ته ورسیده.

# Hewad Daily

د ورځپاڼو رئیس : انجنیر عُزیر« بریالی»
موبایل : ۰۲۰۲۵۲۶۳۴۰
آمر او مسئول مدیر : عطاء الله مبارز
موبایل: ۰۷۷۴۳۱۸۹۰۲
مسئول سکرتر: شېرمحمدنظري
موبایل: ۰۷۸۸۵۰۳۳۷۱

پته: اتمه ناحیه، د المپیک څلورلارې، د حضوري چمن ختیځ، کابل - افغانستان
دارېکو شمېره: س۰۲۰ ۲۵۲۶۳۴۰ - ۰۲۰
E-mail :info@hewaddaily.com
E-mail : hewad1948@gmail.com
دهیوادورځپاڼي انټرنېټي پاڼي دلاندې وېب سایټ له لارې هم کتلی شئ
وېب سایټ: www.hewaddaily.com
دشکایاتو اوتوزیع څانګه:
۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹-۰۷۶۶۰۴۴۹۶۶-۰۷۳۶۰۶۰۷۳

سه شنبه د شعبان المعظم ۵مه ۱۴۴۶ق کال ا د سلواغې ۱۶مه ۱۴۰۳ ل کال ا د 2025م کال د فبرورۍ ۴ مه


## ننګرهار کې د صنعتي ښارګوټي جوړولو لپاره ۲۰ زره جریبه ځمکه ځانګړې شوه

د ننګرهار د کرنې، اوبولګولو او مالدارۍ ریاست مسئولین وایي، چې د عالیقدر امیرالمؤمنین حفظه الله له فرمان سره سم د دغه ولایت په روداتو ولسوالۍ کې د صنعتي ښارګوټي جوړولو په موخه ۲۰ زره جریبه ځمکه تثبیت او ځانګړې شوې ده.د دغه ولایت د کرنې، اوبولګولو او مالدارۍ رئیس مولوي محمد ولي محسن باختر آژانس ته وویل د صنعتي ښارګوټي لپاره دغه ځمکه د ټاکل شوي پلاوي



له لوري تثبیت او ځانګړې شوې ده. نوموړي زیاته کړه ، د یادې ځمکې ټول رسمي اسناد د صنعت او سوداګرۍ وزارت له خوا چمتو او تأیید شوي دي.مولوي محسن یاد اقدام د صنعتکارانو لپاره د ستونزو د حل او د هېواد د اقتصادي ودې لپاره یو مهم ګام یاد کړ او د افغانستان اسلامي امارت د مشرتابه د حکم د تطبیق ارزښت یې وستایه. ځایي شنونکي په دې ولایت کې دا ګام د دې...

۳مخ

## اسرائیلو اشغال شوې لوېدیځه غاړه کې د فلسطینیانو لسګونه ودانۍ ویجاړې کړې

الجزیرې خبري شبکې د فلسطین د روغتیا وزارت له اشغال شوې لویدیځه غاړه کې د جنین کډوالو په کمپ کې د



قوله راپور ورکړی، چې د صهیونیستي رژیم پوځیانو په فلسطینیانو ۲۳ ودانۍ د چاودنې په وسیله...

۳مخ

## د اوبو مدیریت د اسلامي امارت کاري لومړیتوب دی

د چاپېريال ساتنې ملي ادارې عمومي رئیس مولوي مطیع الحق تخنیکي مشاور کرن سره په خپل کاري دفتر کې لیدنه کړې



خالص د مرسي کورپس (Mercy Corps) نړیوالې موسسې له او د اوبو د مدیریت په اړه یې ورسره خبرې کړي.په پیل کې د مرسي کورپس نړیوالي موسسې تخنیکي مشاور په افغانستان کې د خپلو فعالیتونو د څرنګوالي په تړاو معلومات وړاندې کړي. نوموړي ویلي: موږ په افغانستان کې د اوبو د مدیریت په اړه پر یو پروپوزل باندې کار کوو او په دې برخه کې ستاسو همکارۍ اړینه ده، ترڅو وکولی شو د افغانستان اسلامي امارت د پالیسۍ اړوند مخکې لاړ شو، ترڅو له وچکالۍ سره په ښه ډول مبارزه ترسره شي.د چاپېریال ساتنې ملي ادارې عمومي رئیس ...

۳مخ

## لغمان کې ۲۱۱ راستنو شویو کورنیو ته کورونه جوړ شول

د لغمان د کډوالو او راستنېدونکو چارو ریاست مسئولین وایي، چې د یونیسیار موسسې له خوا له ګاونډیو هېوادونو څخه ۲۱۱ راستنو شویو او داخلي بې ځایه شویو بېوزلو کورنیو ته کورونه جوړ شول.د دغه ولایت د کډوالو او راستنېدونکو چارو رئیس مولوي غلام الرحمن بلال وایي، چې دغه کورونه د څلورو میاشتو په موده کې د ولایت په بېلابېلو سیمو کې جوړ شوي، چې پر هر کور ۴۳۰۰ امریکایي ډالره لګښت راغلی.

## د پلتوني بند د جوړولو چارې ۲۰ سلنه بشپړې شوي

د اوبو او انرژۍ وزارت وایي، د پکتیکا د پلتوني بند د جوړولو چارې نږدې ۲۰ سلنه مخته تللي دي. د دغه وزارت ویاند رسنیو ته ویلي: دغه بند د ۱۰۷ میلیونه متره مکعبه اوبو د زېرمه کولو او د



۲۵۰۰ هکتاره ځمکې د خړوبولو وړتیا لري.مطیع الله عابد زیاتوي، چې دغه بند به د ۹۳۵ کیلو واټه برښنا د تولید وړتیا هم ولري. د اوبو او انرژۍ وزارت ویاند، مطیع الله عابد وایي: ((د پکتیکا د پلتوني برښنا بند پروژه د اوبو او انرژۍ وزارت یوه له مهمو پروژو څخه ده، چې کار یې شاوخوا ۲۰ سلنه مخته تللی دي. د یادونې وړ ده چې دا بند د ۲۵۰۰ هکتاره کرنیزې ځمکې د خړوبولو، د یو میګاواټ برښنا د تولید او هر کال د ۱۰۷ میلیونه متره مکعبو اوبو د ذخیره کولو وړتیا لري.))د اقتصادي چارو ځینې شنونکي د اوبو بندونه د کرنې د ودې او ...

۳مخ

## د فراه له زندان څخه ۵۰ تنه بندیان خوشې شول

د عالیقدر امیرالمؤمنین حفظه الله د ځانګړي شفقت او فرمان پر اساس، د فاریاب له مرکزي زندان څخه ۵۰ بندیان ازاد او د ۴۵ نورو د بند موده کمه شوه.د یاد ولایت د مرافعې محکمې د دیوان جزاء رئیس مفتي محمد اسماعیل منصور باختر اطلاعاتي آژانس ته ویلي، چې د عالیقدر امیرالمؤمنین حفظه الله د فرمان له مخې په دغه ولایت کې ۵۰ بندیان ازاد او د ۴۵ نورو بندیانو د بند موده راکمه شوې ده. نوموړي زیاته کړې، چې په دغو بندیانو کې ۴۸ تنه نارینه او ۲ مېرمنې شاملې دي. ورته مهال یو ازاد شوي زنداني د عالیقدر امیرالمؤمنین حفظه الله د فرمان هرکلي کوي او وایي، چې دا اقدام د هغوي لپاره د اصلاح او نوي پیل یو ښه فرصت دي.

## مهاجر فراهي د کتابونو د ارزونې کمېسیون د فعالیتونو ارزونه وکړه

د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت وایي: د خپرونو چارو معینیت کې د یاد نوبتي غونډه وشوه. یاد وزارت زیاته کړې، غونډه کې د خپرونو چارو




معینیت د مرستیال مولوي مهاجر فراهي په مشرۍ د کتابونو ارزونې کمېسیون مرستیال مولوي مهاجر فراهي د کتابونو د ارزونې کمېسیون د فعالیتونو ارزونه وکړه.همدا راز د غونډې په ترڅ کې د یو شمېر کتابونو په اړه د کمېسیون د غړو له لوري نظریات شریک شول او هغه شمېر کتابونه چې له اسلامي او افغاني ارزښتونو سره سم لیکل شوي وو، د چاپ اجازه ورکړل شوه.
د غونډې په وروستیو کې د کمېسیون پر غړو هغه کتابونه وویشل شول، چې دې کمېسیون ته د ارزونې په موخه راوړل شوي وو، تر څو یې راتلونکې غونډې ته راپور وړاندې کړي.

## لوګر کې لسګونه جریبه ځمکه سروې شوه

د کور او ښار جوړولو وزارت د سروې او جي اي، ایس رئیس حافظ انجنیر محمد یوسف لطیف وایي: د ریاست اړوند تخنیکي او مسلکي ټیم یې لوګر ولایت کې (۱۰۰,۹۷) جریبه ځمکه توپوګرافي سروې کړه.ښاغلي انجنیر لطیف وایي، یاد ټیم یې دغه ځمکې د لوګر ولایت په برکي برک پادخواب روغني بازار کې (۶۹,۸۱۵) جریبه ځمکه او په نه برجه بازار کې (۳۱,۱۵۵) جریبه ځمکه سروې کړه.نوموړی وایي: له دې سروې یې موخه دا وه ،چې د یادې ساحې لپاره تفصیلي پلان ترتیب شي. د کور او ښار جوړولو وزارت له ځمکو د سمې استفادې په موخه سروې کوي او بیا یې د ټولګټو پروژو د تطبیق لپاره چمتو کوي.

## نشستی به منظور استفاده معقول از زمین‌های اطراف قوشتیپه برگزار گردید

نشستی به منظور استفاده معقول از زمین‌های اطراف قوشتیپه تحت رهبری مولوی صدراعظم عثمانی، معین زراعت و مالداری وزارت زراعت، آبیاری و مالداری، با اشتراک رؤسای وزارت زراعت و مسئولین وزارت‌های مالیه، انرژی و آب، شهرسازی و مسکن برگزار گردید.در این دیدار، مولوی صدر اعظم عثمانی، معین زراعت و مالداری گفت: ...

ص۳

## له لغمان څخه سلګونه روږدي د درملنې لپاره کابل ته را لیږدول شوي

له لغمان څخه ۵۰۰ تنه پر نشه‌يي توکو روږدي کسان د درملنې لپاره کابل ته راولېږدول شول. دغه نشه‌يان چې له ۶ میاشتو راپه دې خوا د یاد ولایت له بېلابېلو برخو راټول شوي وو، د کابل ۱۰۰۰ او ۴۵۰ بستریز روغتونونو ته انتقال کړای شوي دي. د لغمان مسئول ارګانونه دغه ولایت کې د نشه‌یانو ۳۰ بستریز روغتون د بسنې وړ نه ګڼي او وایي چې په همدې خاطر دغه نشه‌یان د لا ښې درملنې په موخه کابل ته لېږي.د لغمان د والي ویاند عبدالملک نیازي امارتي ورځپاڼو ته په لېږلي پیغام کې ...




۳مخ

## د سوریې د انتقالي حکومت مشر د سعودي له ولیعهد سره وکتل

د راپورونو له مخې د سوریې د انتقالي حکومت مشر احمد الشرع د سعودي عربستان له پادشاه او ولیعهد سره لیدلي دي. عربي رسنیو راپور ورکړی، چې د سعودي عربستان ولیعهد وړمه ورځ په ریاض کې له احمد الشرع څخه هرکلی کړی دی. له دې وړاندې محمد بن سلمان د سوریې د انتقالي دولت د رئیس په توګه د احمد الشرع د ګومارل کېدو مبارکي



ورکړې وه. په سوریې کې له وروستیو بدلونونو وروسته د سعودي د بهرنیو چارو وزیر فیصل بن فرحان دمشق ته تللی و. د سوریې د انتقالي دولت ولسمشر له العربیې سره په مرکه کې ویلي و ،چې سعودي عربستان د سوریې په راتلونکې کې مهم رول لوبولی شي. د یادولو وړ ده، چې دا د احمد الشرع لومړنی بهرنی سفر دی.